تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# في

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

تحریر و ترتیب

سید محمد ثواب

ابن سید آکاخیل باپا صاحب

دوسرا حصہ

ناشر

مدرسہ حدیقۃ الاحناف

Scanned by CamScanner



بسم اللہ الرحمٰن الرحیم



# بعض معتقدات ابن تیمیة

## از تشریحات النابغہ

# بعض معتقدات ابن تيمية :

## التحقيق في بعض معتقدات ابن تيمية :

بعضې خلکو ابن تیمیه مجتهد او امام ګڼلې دي نو زه ورته امام او مجتهد نه وایمه دده لپاره رایې دي چې هغې کې دي منفرد دي د تمام امت د اسلافو نه دي البته قول په زندیقت او کفر دده هم نه کومه .

باقي دده سره معاصرین چې وه امام سبکي وه من الشافعیه او علامه سمهودي وه دوي دواړو په خپله زمانه کې د ابن قیم په دور کې د ابن تیمیه کلکې مقابلې کړې دي په هغه آراء منفرده وو کې چې ابن تیمیه لرل هغې نه وروسته چې کوم محدثین دي سوا د یو څو کسانو نه لکه امام ذهبي چې په فن د تاریخ او اسماء الرجال کې یو څه مهارت لري فن د فقهې وغیره کې بیا دومره نه دي .

بیا ابن کثیر من الشوافع چې دا بیا شاګرد ابن تیمیه یا ابن قیم نو اصلاً ابن تیمیه دا دري شاګردان لري او دري واړه شاګردان یې ډیر زیات تصانیف لري نو خلکو ته بیا معلومه نه وي چې دا شاګردان د چا وي خو د هغوي په قول اعتماد کوي .

یو د هغوي نه ابن کثیر دي ابن کثیر د ابن تیمیه له خاصو شاګردانو نه دي ، نو بعضې مسائلو کې اګر که د هغه ډیر رنګ پرې نه وه ختلې خو بیا هم د استاذ په شاګرد تاثیر وي مسئله د تکفیر د ابوي النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې ابن کثیر کړې ده په البدایة کې دا اثر د شیخ دده دي په ده کې ښکاره شوې دي .

خو د معجزاتو په باب کې بیا ابن قیم او ابن تیمیه ډیرو معجزاتو ته د وضعې قول کوي موضوعي او ضعیف یې ګڼي ابن کثیر بیا مخالف دي هغه کوشش دا کوي چې معجزات که په ضعیف سند سره وي هم چې تعدد د طروقو نه یې قوي کړي د حسن درجې ته یې ورسوي خو بیا هم د ابن کثیر کتابونو سره یو څه احتیاط په کار دي .

بیا د ابن کثیر شاګرد چې دي حافظ العراقي دي کوم چې د احیاء العلوم تخریج یې کړې دي بیا دده شاګرد ابن حجر عسقلاني دي .

نو تقریباً ابن تیمیه د ابن حجر عسقلاني شیخ الشیخ جوړیږي نو اګر که دا خو کلک شافعي المذهب وه او د اهلسنت نه وه او د تعطیل او د تشبیه په مسئله کې بالکل یو جانب

ته يې ذهاب نه وه کړي ، نو له دغه اړخ نه څه تاثيرات په کې شته نو اقوالو کې يې يو څه وينبيدل په کار وي .

حتی چې د ابن حجر صاحب هم اقوالو ته يې وينبيدل په کار دي چې دده شيخ د هغه چا شاګرد دي چې د هغوي سره څه ناڅه تعلق او تړاو لري .

بعضې علماو دلته پاکستان کې يو کتاب ليکلي رئيس الزنادقه ابن تيميه هغوي ورته د زنديقانو رئيس وايي دا رايه دده په حق کې شيعه ګان لري او حتی چې د بريل علماء اکثر دده په حق کې قول د رئيس الزنادقه لري .

او زمونږ د حضرت صاحب بعضې مريدان هم په دې مسئله کې چې کلک تللي نو داسې نسبتونه يې کړې دي د هرچا خپلې رايې دي څه دليل به لري څه به وايي .

زما خپله رايه داده چې ابن تيميه ته امام ويل ، مجتهد ويل ، مقتدی ويل په دين کې سره د وجود د ائمه وو اربعو وو نه دا ضلالت او ګمراهي ده .

چې هر کله آئمه اربعه شته دي او د امت اجماع او اتفاق په اربعة ائمه وو راغلو او دده نه سوا څومره لوي لوي ستنې د دين او د حديثو موجودې وې د چا مذهب هم رائج نه شو .

يا ابن تيميه مجتهد ګڼل او هغه د څلورو مذهبونو خلاف پنځم مذهب ګڼل او په هره جزيه کې د هغه رايې ته اعتبار ورکول .

حال دا دی چې په فروعو کې دې د حنبلي فقهې مقلد دي او وي داسې يو سړي کله په فروعو کې په يو مذهب کې داخل وي خو په اصولو کې خارج وي لکه نن صبا اشاعتيان په فروعو کې ځان احناف ګڼي ليکن په عقائدو کې معتزله دي يا قدريه دي نو دغه شان دې هم په فروعو کې حنبلي وه .

په عقائدو کې بعضې مسائلو کې د جهميه وو لاره اختيار کړې ده په بعضې مسائلو کې د مشبه مجسمه وو لار اختيار کړې ده وغيره دده نه به زه هغه اقوال او عبارتونه تاسو ته ذکر کړم چې کومو علماو په دده ردونه کړي او هغه دده رايې وي په هغې کې دې متفرد وه .

په اسلافو کې ده سره څوک ملګرې نه وه يو کاريې په فتاوی کې دي خو اعتماد به پرې نه شي کولې دې چې هره خبره کوي دده رايه وي نو لنډو الفاظو کې خلاصه کړي چې په دې باندې اجماع د سلفو هو خلفو علماو ده .

دا عبارت ابن تیمیه ډیر زیات وایي او ښکاره په هغې کې د عمده عمده علماو مخالف اقوال موجود وي دې په هغې سترګې پټوي وایي دا اجماع د سلفو او خلفو ده.

یو لفظ بل ډیر زیات وایي او دا د صحابه وو د تابعینو او د هغه چا چې په قول یې اعتماد کیږي د هغه په اقوالو کې نشته لکه دا دوي چې وایي چې دا شئ نشته دا الفاظ هم ډیر استعمالوي.

نو زه د لته بعضې معتقدات د ابن تیمیه ذکر کومه زما اعتراض دده په علم نه دي چې دې عالم نه وه ښه جید عالم وه په هر فن کې ماهر وه د ائمه وو د اقوالو جامع وه حافظ د حدیثو وه.

خو دا چې یوائې علم ذریعه د نجات ګرځي او که نه ګرځي دا جدا خبره ده.

نو که خدای ښښلې وي نو مونږ خفه وربانديې نه یو چې ولې ښښلې دي خو دا اقوال بعضې داسې دي چې سخت د اهلسنت د اقوالو نه بعید چلیدلې دي او بعضې داسې تفردات یې دي چې هغه تفوه پرې باندې چې سړي کوي نو یریږي چې زه د ایمان نه خلاص نه شم.

نو دا ټوله دا موضوع چې ما زیر بحث کړه فقط طالبانو او علماو ته چې دده د کتبو د مطالعې سره احتیاط وکړي اعتماد پرې مه کوي مه یې ګوري او که ګوري نو په دې نظریې مه ګورئ چې زه به دده له هرې خبرې فائده او چتوم ځکه چې داسې رایې لري چې هغه رایه کې به تا د اهلسنت د عقیدې نه واړوي نو دا بعضې معتقدات د ابن تیمیه دي:

## اول: دراء تعارض العقل والنقل:

اول انفرادي قول دده چې په هغې کې د بعض الفلاسفه وو معي وه:

القول بقدم جنس العالم دون فرده. امت په دې متفق دي چې عالم که جنس دي که یې نوع ده که یې فرد دي حادث دي.

اصلاً ابن تیمیه دې خبرې ته زور ولې ورکوي چې جنس د عالم قدیم دي نوع یې قدیمه ده فرد یې حادث دي دې خبرې ته ولې زور ورکوي دا خبره دده په اوه (۷) کتابونو کې له ده نه منقوله ده.

درء تعارض العقل والنقل داد ابن تيميه كتاب دي جلد ۱ صفحه ۳۱۰ کې ليکي :

ثم بعض هؤلاء قد يجعلون نوع ذلك حادثاً كما تقوله الكرامية وأما أكثر أهل الحديث ومن وافقهم فانهم لا يجعلون النوع حادثاً بل قديماً .

وايي داد کراميه وو مذهب دي چې نوعې ته حادث وايي دا ځان نه تپل دي دده خبره ده.

داد اهلسنت اجماعي عقيده ده چې عالم مع نوعه مع جنسه وفرده دا حادث دي په رد د فلاسفه وو کې دا ويلې وه چې فلاسفه دوه ډلې شول هغه وخت کې يوه ډله فلاسفه وو چې هغوي عالم مع افراده او مع نوعه قديم وګڼل .

خو مراد له افرادو نه زه او ته نه يو مراد د افرادو نه يې هغه ماده واخيسته هغه جزء لا يتجزی چې ورته وايي دوي هغه وايي قديمه ده او هغه وه نو د هغې نه بعد بدء شروع شوه او د هغې سره ترکيب د اجزاء وشو .

نو يوه ډله داده چې د نوعې او د دغې مادې د قدم قائل دي او دويمه ډله د فلاسفه وو داده چې دې مادي ته حادث وايي خو دې نوعې ته يې قديم وايي .

ابن تيميه دا مسئله په کراميه وو تپله دا عقيده د فلاسفه وو وه د دويم جماعت او ابن تيميه هم دغه عقيده د فلاسفه وو خپله کړه .

په دې وجه مو پوهوم چې ولې ابن تيميه دا خبره کوي دده مقصد څه دي خو دا دده عبارت دې ګوره :

اما اكثر اهل الحديث ومن وافقهم فانهم لا يجعلون النوع حادثاً .

دوي نوعې ته حادث نه وايي .

بل قديماً ويفرقون بين حدوث النوع وحدوث الفرد من افراده .

دوي فرق کوي چې نوع غير شئ دي او فرد غير شئ دي اول خو تاسو سوچ وکړي چې وجود د نوعې بدون د فرد نه څنګه متصور دي شته دي چې انسان دې وي او زيد عمر بکر دا ټول افراد دې نه وي شته دي چې حيوان وي او افراد دي نه وي ورسره نو ته څنګه قديم نوعه ګڼي او فرد نه ګڼي هلته بيا او نوعه قديمه ګڼي او فرد نه ګڼي او فرق په کې څنګه کوي ته .

بیا په درء تعارض العقل والنقل جلد ۱ صفحه ٦٧ کې وايي :

ليس في القران ما يدل عليها البته فاذا قدر ان الاقوال هو الحركة فمن اين في القرآن ما يدل دلالة ظاهرة على ان كل متحرك محدث او ممكن .

وايي كه څوک دا اعتراض درباندې کوي چې د خدای تعالی نزول تمامې دنيا ته دي قائل دي په نزول د حركت سره قائل دي وايي كه څوک دا وايي چې دا حركت خو حادث دي نو وايي ته ورته ووايه .

فمن اين في القرآن ما يدل دلالة ظاهرة على ان كل متحرك محدث ؟.

دا چا ويلي چې هر حركت والا محدث دي او يا هر حركت والا ممكن دي .

وان الحركة لا تقوم الا بحادث او ممكن ؟.

دا چا ويلي چې هر حركت نه قائميږي مګر حادث او ممكن پورې .

وان ما قامت به الحوادث لم يخل منها ؟.

چا پورې چې حوادث قائم شي نو هغه خپله وايي د حادثي نه خالي نه وي دا وايي چا ويلي .

وان ما لا يخلو من الحوادث فهو حادث ؟.

چې څوک د حوادثو نه خالي نه وي هغه حادث دي دا چا ويلي .

واين في القرآن امتناع حوادث لا اول لها .

د قرآن كريم كوم ځای راغلي دي چې داسې حوادث نشته دي چې هغې ته دې اول نه وي يعنې دې د حوادثو د قدم قائل دي د كل عالم .

يعنې ابن تيميه قائل ددې دي چې باري تعالى عياذاً بالله جالس على العرش دي دا عرش چې هغه وخت كې خلكو تپوس تري نه په مناظره كې كړې دي چې دا ته قديم ګڼې كه حادث يې ګڼې ده سره نوره لاره نه وه دلته .

كه وايي چې دا حادث ګڼم نو وايي چې دا عرش نه وه نو خالق چيرته وه دلته دې نور ګير شوې وه مناظره كې له ده سره ډيرې مناظرې هغه وخت كې شوې دي متكلمينو محدثينو

ورسره کړې دي کې دې راګیر کړې وه د بادشاه مخکې چې کله یې مناظره کې د بادشاه مخکې دي راګیر کړې وه او ده باندې بیا دوه کاله جیل وختلو .

دې چې کله جیل ته لاړو نو په جیل کې دا سوچ وکړو چې اوس له دې اعتراض نه ځان څنګه خلاص کړم نو چې را بهر شو دا قول یې ښکاره کړو چې نوعه او جنس د عالم قدیم ګڼمه او فرد یې حادث ګڼمه دا ده تفکر کړې وه .

چې بله مناظره پیښه شوه چې ته باري تعالی جالس علی العرش ګڼې او دا عرش خو حادث دي وایي نه دا چا ویلې دي چې عرش حادث دي د عرش نوعه خو قدیمه ده دغه ځای نه ده د فرد او د نوعې فرق وکړو د عرش نوعه خو قدیمه ده خالق وه عرش هم ورسره وه .

وایي دغه ته چې کوم عرش یادوي وایي نه دا خو حادث ګڼمه هلته پرې علماء را پورته کیدل چې عرش ته یې قدیم ویلې تعدد د قدم قائل شو دا خو لویه د کفر عقیده وه نه وایي دې عرش ته خو قدیم نه وایمه نو څه شئ ته قدیم وایي نوعې ته یې وایي قدیم وایمه بس یو عرش وه هلته .

ده چې دا قول کړې چې نوعه قدیمه ده او فرد حادث دي دا په دغه مناظره کې د ګیریدو نه بعد تفکر یې په جیل کې کړې دي او د نوعې او د فرد یې فرق وکړو چې فرق یې وکړو نو بیا یې دا قول وکړو چې نوعه قدیمه ګڼمه او فرد یې حادث ګڼمه نو فلهذا د عرش نوعه قدیمه ده نو باري تعالی سره عرش وه چې هر چیرته وه عرش وه ورسره همأغه عرش باندې خالق وه .

دا اوسني چې کوم عرش دي نه دا وایي حادث دي دا یې وایي وروسته پیدا کړې بل یو عرش چې نوعه د دې اخلمه چې نفس د عرش اطلاق په هر څه کیږي په تخت یې اطلاق کیږي د عرش دغه نوعه د دې قدیمه ګڼمه دا صرف د هغه جالس على العرش له عقیدې نه دي نه او ښته نو د هغې د پاره یې دا تاویل جوړ کړو .

یوه خطرناکه عقیده د ابن تیمیه چې د ټول امت د اسلافو مخالفه او د فلاسفه وو د دویم جماعت متبع وه چې نوعه او جنس د عالم قدیم دي او فرد یې حادث دي دا په امت مسلمه کې د چا عقیده نه وه .

اشارات المرام جلد ۱ صفحه ۱۹۷ د علامه بياضي الحنفي هغه په نوع او جنس د عالم مع فرده په حدوث باندې دلائل وايي او په آخره کې وايي :

فبطل ما ظن ابن تيميه من قدم العرش كما في شرح العدودية .

باطله شوه هغه چې ابن تيميه ګمان کړې دي چې عرش قديم دي كما في شرح العدوديه دا دده تصنيف دي او په دې کې يې تصريح کړې دي .

دارنګې علامه بدر الدين زركشي په په تثنيف المسامع جلد ۴ صفحه ۶۳۳ کې ذکر كوي :

اتفاق المسلمين على كفر من يقول بأزلية نوع العالم .

مسلمانان متفق دي په کفر د هغه چا چې وايي نوعه د عالم ازلي ده يا قديمه ده .

فقال بعد ان ذكر ان الفلاسفة قالوا .

ويلې چې فلاسفه وو ويلې دي چې :

ان العالم قديم بمادته وصورته .

او بعضې وايي چې قديم الماده محدث الصورة ده .

وضل لهم المسلمون في ذلك كفروه .

او دا فلاسفه مسلمانانو ګمراه ګڼلي کافرې ورته ويلې په دغه خبره کې چې دوي ماده نوعې او جنس تولو ته قديم ويلې دي .

همدغه شان فتوى د حافظ ابن دقيق العيد قاضي عياض المالکي حافظ زين الدين العراقي حافظ ابن حجر دې تولو نه منقوله ده چې امت متفق دي په حدوث د عالم مع نوعه مع فرده باندې .

دارنګې فتح الباري جلد ۱۲ صفحه ۲۰۲ ابن حجر صاحب دده چونکې شيخ الشيخ راتلو نو ډيرو ځايونو کې نوم نه اخلي بعضې کتابونو کې غصه شوې نوم يې ورته اخيستې خو اكثراً نوم نه اخلي عبارت ته ګوري .

قال شيخنا العراقي في شرح الترمذي الصحيح في تكفير منكر الاجماع .

دا خبره دې ولې وضعه کوي دلته ابن تيميه وايي چې منكر د اجماع کافر نه دي .

صحيح خبره داده چې منکر د اجماع کافر دي .

تقييده بانكار ما يعلم وجوبه من الدين بالضرورة كالصلوات الخمس ومنهم من عبر بانكار ما علم وجوبه بالتواتر ومنه القول بحدوث العالم .

د اجماع نه پنځه لمونځونه دي که چا وويل چې پنځه نه دي کافر دي .

د اجماع نه هر هغه شي چې وجوب يې په تواتر ثابت وي هغه دي د اجماع نه قول دي بحدوث العالم اجماع ده په دې چې عالم حادث دي .

وقد حكى القاضي عياض وغيره الاجماع على تكفير من يقول بقدم العالم أو بقائه .

قاضي عياض اجماع نقل کړې ده په دې باندې چې څوک د عالم د قدم قائل شي کافر کيږي هغه په شفاء جلد ۲ صفحه ۶۰۶ کې دا ذکر کړې دي .

وكذلك نقطع على كفر من قال بقدم العالم أو بقائه .

قطعيت سره مونږ فيصله کوو چې کافر دي هغه څوک چې عالم ته قديم وايي .

وشك في ذلك . او يا وايي دې کې شک لري هغه هم وايي کافر دي .

على مذهب بعض الفلاسفة والدهرية . دا يا د هغوي مذهب دي .

وقال ابن دقيق العيد وقع هنا من يدعي الحذق في المعقولات .

ګوره ابن دقيق العيد د اد ابن تيميه معصر دي هغه هم نوم نه اخلي خو بنه رد پرې کوي .
ابن دقيق العيد وايي چې څه خلک دي چې دعوى د مهارت کوي په معقولاتو کې .

ويميل الى الفلسفة . ميلان فلسفې ته وه ابن تيميه يادوي .

فظن ان المخالف في حدوث العالم لا يكفر .

عالم ته چې څوک حادث نه وايي کافر ورته نه ويل کيږي په دې کې مخالف شوې .

لانه من قبيل مخالفة الاجماع .

وايي ځکه عالم ته حادث ويل په اجماع ثابت دي او مخالف د اجماع هغه کافر نه وي .

وتمسك بقولنا ان منكر الاجماع لا يكفر على الاطلاق .

دې نه يې استدلال کړې دي .

حتى يثبت النقل بذلك متواتراً عن صاحب الشرع قال وهو تمسك ساقط.

ابن دقيق العيد وايي دا تمسک ساقط دي استدلال نه.

اما عن عمي في البصيرة او تعامر.

يا يې په بصيرة کې عمي ده يا يې په زوره ځان ړوند کړې دي.

لان حدوث العالم من قبيل ما اجتمع فيه الاجماع والتواتر بالنقل.

ځکه حدوث د عالم يو اځې اجماع نه ده تواتر بالنقل هم په کې ده.

دارنګې محمد المرتضى الزبيدي في شرح الاحياء جلد ۱ صفحه ۱۸۴ کې ليکي:

ومن ذلك قول بقدم العالم وازليته فلم يذهب احد من المسلمين الى شيء من ذلك.

چا چې قول کړې دي په قدم د عالم يو د مسلمانانو نه دې ته ذهاب نه دې کړې.

اولين خطرناکه عقيده د ابن تيميه د قدم د نوع عالم او جنس العالم حتى چې د عرش د قدم دې قائل وه خپله د تجسيم عقيده يې پرې ثابتوله.

له ډيرو ځايونو نه دا بوي بنکاره کيږي بخاري شريف کې يو حديث دي کوم خلک چې وايي چې ما سوى الله ټول حادث دي دا حديث د بخاري پيش کوي په کتاب بدء الوحي کې مذکور دي:

کان الله ولم يکن شيء غيره. وه خدای تعالى هيڅ شي هم نه وه.

لم يکن شيء کې شيء نکره ده او نکره په سياق د نفي کې افاده د عموم کوي کنه نو دا حديث صريح په دې کې دي چې يو باري تعالى وه نور هيڅ شي هم نه وه دا حديث دي.

دا حديث بخاري کې يو بل ځای بيا په نورو الفاظو باندې موجود دي:

کان الله ولم يکن شيء قبله. وه خدای تعالى او مخکې ترې نه هيڅ شي هم نه وه.

دا هم حديث دي په دې الفاظو د حديث کې تغير دي يو کې راځي: لم يکن شيء غيره، ده نه غير څه نه وه.

بل کې راځي: لم يکن شيء قبله، ده نه مخکې څه نه وه.

ابن تیمیه زور لګوي ترجیح د روایت دویم لړ ته چې د قدم قائل نه دي دې ته زور ولې ورکوي هغه حدیث په دد رد کوي دې وایي دا روستني حدیث د سند په لحاظ ډیر قوي دي دواړه بخاري کې موجود دي بس ددې ته دا حدیث خوند ورکوي : لم یکن شيء قبله ، مخکې ترې نه څه نه وه اګر که ده سره معي وه .

له ده سره وه خو مخکې ترې نه څه نه وه ګوره داسې ځایونو کې چې دا استدلالات کړي دي په احادیثو کې دا له ده نه هغه بوي راخیژي چې دې د قدم د عالم قائل دي کنه که نه وایي قائل هغه حدیث خو دده په عقیده رد کوي له دې وجې نه هغه حدیث نه دي حدیث ته ترجیح ورکوي .

فتح الباري جلد ۱۳ صفحه ۴۱۰ کې ابن حجر صاحب دغه حدیث باندې خبرې کوي:

**کان الله ولم یکن شيء قبله . فقال في ما حاول ابن تیمیة في ترجیح هذه الروایة على تلك الروایة توسلاً على عقیدته .**

ابن حجر صاحب وایي چې دا قصد چې ابن تیمیه کړې دي چې : لم یکن شيء قبله دا حدیث یې چې په هغې راجح ګڼلې دي وایي د ځان رسولو خپلې عقیدې ته .

**وهي أصرح في الرد على من أثبت حوادث لا أول لها .** یعنې داسې حوادث شته چې اول نه لري ازلي دي .

نو ابن حجر صاحب وایي :

**وهي من مستشنع المسائل المنسوبة لابن تیمیة.**

ده ته د ډیرو مسائلو انفرادي نسبت شوې دي چې دده رایې دي خو بده مسئله هغه داده چې ابن تیمیه ته منسوبه ده اشنع د مسائلو داده چې دې د نوعې د قدم قائل وه دا خو تعدد د قدیم شو او تعدد د قدیم په اتفاق د علماو باندې کفر لازموي .

خو اصلاً ده به هغه افرادو ته قدیم نه ویلې کنه دې به سوچه فلسفي وه یا به دهري وه خو افراد یې قدیم نه ګڼل نوع دده به یې قدیمه ګڼله .

په فن د فقه حدیث سیرة کې ډیر ماهر وه خو د علم کلام او د فلسفې او د علم منطق په عباراتو کې دې ډیر خطاء شوې دي دده دې فن نه ، نه وه په دې کې کمزورې وه .

نوعه وجود بدون د افرادو نه له سره لري نه هغه چيرته موجود يږي په خارج چې ته يو قديم کړي او بل حادث کړي چې نوعه دې موجود کړه افراد يې څه شول چې افراد دي موجود کړه نوعه يې څنګه شوله .

دا اوله مسئله شنيعه ابن حجر صاحب ورته مستشنع د مسائلو منسوبه ويلي ده دا بده عقيده د ابن تيميه وه امت کې ده پسې چا ذهاب نه دي کړي .

زه وايم !!! وهابيان به يې هم پسې نه کوي دوي به هم شرميږي چې ووايي څکه ما تر اوسه د وهابيانو په کتبو کې نه دي ليدلې چې باري تعالى وه نو دا عرش هم ورسره وه دا د دوي په کتابونو کې ما نه دي ليدلې .

## دويمه بده عقيده : چې منسوبه ابن تيميه ته ده :

هغه جواز د قيام الحادث وه مع الله تعالى .

د باري تعالى پورې د صفاتو د حادثو د قيام دې قائل وه جائز ده چې صفات د حادث دې خالق ته ورکول شي چې عبارت دي د حرکت سکون ضحک جلوس وغيره نه دا ټول جائز دي چې خالق ته ورکول شي .

منهاج السنة النبوية جلد ۲ صفحه ۲۶۳.

په دې مسئله کې چې قيام د حوادثو تر ذات د باري تعالى د جائز ګڼلو مذهب د هاشميه او د کراميه ته د ذهاب کړې وه نو د منهاج په مذکوره صفحه دې وايي :

**فأنا نقول انه يتحرك وتقوم .**

مونږ دا قول کوو چې خداى تعالى خوزيږي .

**وتقوم به الحوادث والاعراض .**

حوادث او اعراض ده پورې قائميدې شي که څوک وايي چې نه شي کيدلې .

**فما الدليل على بطلان قولنا .**

زمونږ د قول په بطلان څوک څه دليل پيش کولې شي .

نو دې قائل ددې دي اشارتاً نه صراحتاً ددې خبرې دعوى به يې کوله .

دارنګې مجموع الفتاوى د تفسير دده صفحه ۳۰۹ کې ليکي :

من قال ان الخلق حادث كالهاشمية والكرامية قال نحن نقول بقيام الحوادث به .

مونږ قول کوو په قيام د حوادثو تر ذات د باري تعالى .

ولا دليل على بطلان ذلك .

دليل نشته په بطلان د دې باندې .

بلکې عقل نقل کتاب او سنت اجماع د سلفو يدل على تحقيق ذلك .

دا ثابتوي چې حوادث ذات د باري تعالى پورې قائميدې شي .

د دې جواب شرح لمع الادلة للجويني صفحه ۸۰ هغې کې ذکر کوي چې قيام د حوداثو تر ذات د باري تعالىٰ دا عقيده د کراميه فرقې ده وايي .

شيخ شرف الدين ذکر کوي :

وخالف اجماع الأمة طائفة نبغوا في سجستان .

مخالفت د اجماع کړې دې يوې ډلې چې را پيدا شوې سجستان کې ده چې ملقب ينسب الكرامية چې نسبت يې کيږي محمد بن کرام ته گمان يې کړې :

ان الحوادث تطرأ . يعني تتجدد على ذات الله .

حوادث د خداى په ذات متجدد راتلې شي او قائميدې شي ورپورې .

وهذا المذهب النظير مذهب النجوس .

دا مذهب هم مثل د مذهب د مجوسيانو دې .

ووجه مضاهته لمذهب المجوس .

مشابهت په څه کې دې ، هغه دا يوه طائفه د مجوسيانو .

تقول بقدم النور وحدوث الظلمة . —

يوه ډله ده هغوي وايي نور قديم دي ظلمة حادث دي .

وان سبب الحدوث ان يزدان فَكَّرَ فكرةً فحدث منها شخص من اشخاص الظلمة فابعده واقطاعه هرمز .

وايي يزدان دوي خپل معبود ګڼي د تفکر وکړو تفکر نه بعد يو شخص را پيدا شو هغه ذات د ظلمة وه دارا پيدا شو نو لري که د ځان نه بې انتهاء لري وشيندلو هغه ظلمت ته هرمز ويل کيږي وايي دا هرمز ظلمت حادث دي او دا يزدان قديم دي .

وجميع شر ينسب اليه .

او دا شرورو نسبت ظلمت ته کيږي هرمز ته او د خير نسبت يزدان ته کيږي .

كذلك الكرامية تزعم ان الله اذا اراد ان يحدث المحدث اوجد في ذاته كاف ونونا وارادتاً حادثةً .

ځان کې خپله اراده بيا را پيدا کړي .

فعن ذلك تصدر سائر المخلوقات المبائنة لذاته .

نو دې مسئله کې دې مذهب د کراميه وو ته تللي دي هغوي دا عقيده ساتي دليل په رد ددې باندې يو ايات کريمه کافي دي ﴿لَا أُحِبُّ الْآفِلِينَ﴾ .

که په ذات د باري تعالی حدوث طاري کيدې شو او صفات د حادث نو آفل او غروب چې يو حادث وه او ذات د باري تعالی پورې نه قائميده ولي ترې استدلال کوي ابراهيم عليه السلام :

﴿فَلَمَّا أَفَلَ قَالَ لَا أُحِبُّ الْآفِلِينَ﴾ .

ځکه ذات باري تعالی باندې حادث نه شي راتلې او نه شي طاري کيدې او دا يو حدوث نسبت وه .

## دريمه مسئله : انفرادي چې ده ته منسوبه وه هغه قول وه په جسميت باندې :

داسې به يې نه ويل چې الله جسم يو مجسمي هم لا نه دي ويلې چې جسم کالاجسام خو جسم يې ګڼي دده له ډير عباراتو نه تجسيم فهميږي عبارت ته يې ګورئ :

مجموع الفتاوى جلد ۵ صفحه ۴۳۴ :

وأما الشرع فمعلوم انه لم ينقل عن احد من الانبياء ولا الصحابة ولا التابعين ولا سلف الامة ان الله جسم او ان الله ليس بجسم .

ګورئ دې ددې قائل نه دي چې جسم خو ددې هم قائل نه دي چې ته وايي ليس بجسم ځکه يول مجسمه چې دي جسم کالاجسام نه وايي ورته جسم لا کالاجسام وايي .

نو دې وايي چې نه دي نقل له انبياء صحابه تابعينو سلف الامة نه چې ان الله جسم او ان الله ليس بجسم بل النفي والاثبات بدعة في الشرع .

وايي دا خبره چې الله ليس بجسم بدعة قول دي دا به نه کوي داسې به نه وايي چې خداى جَلَّجَلَالُهٗ جسم نه دي دواړه بدعت دی .

منهاج السنة جلد ۱ صفحه ۱۸۰ دده عبارت ته ګوري فهم ترې کيږي چې دې د تجسيم قايل دي او که نه .

وقد يراد بالجسم ما يشار اليه .

کله د جسم نه مراد چې دا اشاره ورته کيږي .

او ما يرى .

او يا په ستر ګو ليدل کيږي .

او ما تقوم به الصفات .

صفات وريوري قائميږي د حادث . دغه جسم دي .

والله تعالى يُرى في الاخرة .

خداى تعالى په اخرت کې ليدل کيږي .

تقوم به الصفات .

صفات پسې قائميږي .

يشير اليه الناس عند الدعاء .

په دعاء کې ورته اشاره کوي .

يشر اليه الناس عند الدعاء بايديهم وقلوبهم ووجوههم واعينهم فإن أراد بقوله ليس بحسم هذا المعنى .

که څوک وايي چې خداى جَلَّجَلَالُهٗ جسم نه دي مقصد يې دا وي .

قيل له هذا المعنى الذي قصدت نفيه بهذا اللفظ معنى ثابت بصحيح المنقول.

دا خو وايي په صحيح منقول ثابته ده چې اشاره ورته کيږي او صفات يې حادث پسې قائميږي او دارنګې په سترګو ليدل کيږي او که جسم دې ته وايي په دغه معنى خو دې دا عبارت ته مخکې وروسته وګورئ دې د جسم قول کوي خو چې اله جسم هلته نص نه لري.

چې مونږ نه د ليس بجسم نص غواړي خو مونږ يې بيا ده نه غواړو هغه وخت کې هم علماء ترې غوښته مناظرې به يې وي ورسره نو ده به انه جسم نه ويلې خو که وايي جسم دې ته وايي چې په سترګو ليدل کيږي لکه جسم په سترګو ليدل کيږي.

وايي خداى ليدل کيږي کنه صفات د حادث پسې قائميږي حرکت سکون ضحک دا پرې راځي جسم باندې لکه د جسم کوم معنون چې دي دلته بيانوي چې اشاره ورته وشي په سترګو وليدل شي او صفات د حادث پرې قائم شي هغه دري واړه يې په خالق ثابت کړي انه جسم خو د ويرې نه نه شي ويلې ځکه دلته نص نه لري په هغې کې.

دارنګې تلبيس الجهمية جلد ۱ صفحه ۱۰۱ په هغې کې دي ذکر کوي:

وليس في كتاب الله ولا سنة رسوله ولا قول احد من سلف الامة و أئمتها انه ليس بجسم.

کتاب الله سنت رسول د سلفو يو قول په دې نشته چې ووايي چې خداى تعالى جسم نه دي.

دا ټول عبارات دده ددې دليل دي چې دې خالق ته د صفات الأجسام او د حادث او د جسم قائل دي.

## څلورمه عقيده انفرادي د ابن تيميه:

چې هغه نسبت د حرکاتو به يې کوه ذات د باري تعالى لره.

دره تعارض العقل والنقل جلد ۱ صفحه ۲۶۴ وايي که تاسو د قيوم معنى دا کوي:

الذي لا يزول عن مكانه ولا يتحرك فلا يقبل منك هذا التفسير الا باثر صحيح مأثور عن رسول الله او عن بعض اصحابه او التابعين لان الحي القيوم يفعل ما يشاء ويتحرك.

دا يفعل ما يشاء خو صحيح دي خو دا ويتحرك دا ده خپله خبره ده په ذات د باري تعالى کې .

اذا شاء ويهبط ويرتفع . کوزېږي پورته کيږي .

اذا شاء ويقبض ويبسط ويقوم ويجلس اذا شاء لان امارة ما بين الحي والميت التحرك کل حي متحرك لا محالة .

هر مړي حرکت نه لري چې خداى تعالى حي دي نو متحرک هم دي ته چې ته د ليس بجسم استدلال غواړي چې ما ته نص کې وښايه نو دا نه متحرک هم نص کې وښايه کنه يا اله جالس .

دې ددې حرکاتو قائل وه د حديث د نزول نه بهٔ يې استدلال کولو بيا بهٔ يې دا منسوبولو امام احمد رَحِمَهُ اللهُ ته امام بيهقي صاحب ته دا سلف د محدثينو ته بهٔ يې منسوبول چې دا ددوي عقيده وه .

د هغوي دا عقيده نه وه هغوي صفات چې کوم باري تعالى ځان ته ثابت کړې وه په هغوي د ايمان عقيده وه او په هغې کې ترمذي دويم جلد کې د سفيان صاحب قول دا پيش کوي چې :

قراءته تفسيره وتفسيره قراءته .

د غه عقيده د هغوي وه قرائت يې تفسير دي او تفسير يې قرائت دي .

د يد معنى په لاس مه کوه بس څه تيرېږه دا قرائت يې تفسير دي او تفسير يې قرائت دي که غواړې چې تفسير وکړي نو يد ولوله .

داد سفيان الثوري نه منقوله ده د ابن عيينة نه مذکوره ده دويم جلد د ترمذي کې امام بيهقي ته دوي دا منسوبوي کتاب الصفات هغه ليکلې دي .

اوس هغه خپله څه وايي الاسماء والصفات د وجاء ربك والملك صفاً صفاً د جاء ربك شرحه امام بيهقي کوي په صفحه ۴۴۹ باندې ليکي :

والمجيء والنزول صفتان منفيتان عن الله من طريق الحركة والانتقال من حال الى حال .

تلل راتلل كزيدل ختل كه دا په دې معنی اخلي چې طريقه د حركت او د انتقال د يو حال نه بل حال ته اخلي صفتان منفيتان عن الله تعالى دا خو خداى جَلَّجَلَالُهُ ته نه منسوبيږي بيا .

بل هما صفتان من صفات الله بلا تشبيه جل الله تعالى عما يقول المعطلة لصفاته والمشبهة بها علوا كبيرا .

دا معطلة د اياتونو منكر شول وايي هيڅ معنى نه لري او مشبه چې وه هغوي حقيقي معنى ګاڼي واخيستې نو د اهلسنت دې وسط کې لاړل دا محدثين چې دي نه معطله دي نه مشبه دي ، هغه وايي :

جل الله تعالى عما يقول المعطلة لصفاته والمشبهة بها علوا كبيرا .

نو كه ته وايي معنى د حركت اخلي نو دا صفت منفي عن الله تعالى دي داد خداى جَلَّجَلَالُهُ له صفت نه دي بيا .

خداى ته چې دا صفات كه بلا تشبيه .

امام نسائي رَحِمَهُ اللَّهُ حديث د نزول بيا په دې الفاظو نقل كړې دي د حضرت ابي هريرة ابي سعيد الخدري روايت دي : السنن الكبرى للنسائي جلد ٦ صفحه ١٢٤ :

ان الله عز وجل يمهل حتى يمضي شطر الليل الاول ثم يأمر مناديا ينادي فيقول هل من داع يستجاب له هل من مستغفر يغفر له هل من سائل يعطي .

دا روايت اشكال ختموي چې دا فقط فرشتې ته امر دي دا فرشتې ته په دغه وخت کې امر كوي چې دغه ملک کې د دغه خاص وخت راورسيدلو اعلان په کې وکړه بيا چې بل ځاى کې ثلث الليل راشي فرشته بيا ماموره شي په دې اعلان باندې .

نو روايت د نسائي دادى چې امر كوي منادي لره امام بيهقي دوي ځان سره ګڼي .

دا ددې ځاى وهابيان خلكو ته وايي وايي ستاسو عقيدې خرابې دي تاسو خداى تعالى په عرش نه ګڼي او نزول په ثلث الليل کې نه مني مؤمنان نه يې .

امام بيهقي په الاسماء و الصفات صفحه ۴۵۴ کې ليکي :

وقد زل بعض الشيوخ اهل الحديث .

بعضې شيوخ د اهل حديثو د هغوي قدم ښويدلي دي .

مما يرجع إلى معرفته بالحديث والرجال.

او هغه دومره معروف دي چې د حديث په متن او په رجالو د سند کې خلک هغه ته رجوع کوي .

نوم يې نه دي اخيستې چې دا څوک دي خو همدغه ائمه د محدثينو دي دا لوي لوي دا معروفو کې بعضې کسان دي :

فحاد عن هذه الطريقة .

کږځيدلي د سمې لارې نه بعضې اهل حديث يادوي .

حين روى حديث نزول .

حديث د نزول يې چې روايت کړې .

ثم أقبل على نفسه فقال .

ځان سره سوچ کوي .

ان قال قائل .

که يو سړي ووايي :

كيف ينزل ربنا الى السماء .

زمونږ رب اسمان ته څنګه کوزيږي .

نو زه به جواب ورکړم :

ينزل كيف يشاء .

څه وخت يې چې خوښه وي کوزيږي .

فان قال . که ما ته وايي :

هل يتحرك اذا نزل .

چې راکوزيږي خوزيږي .

فقال . نو جواب به وشي .

ان شاء يتحرك وان شاء لم يتحرك . خوښه يې ده خوزيږي او كه نه خوزيږي زه به دا ورته ووايمه .

وهذا خطأء فاحش عظيم . د امام بيهقي په الاسماء والصفات كې وايي دا ډيره فاحشه غټه خطاء ده .

والله تعالى لا يوصف بالحركة . خداى تعالى په حركت نه موصوف كيږي .

لان الحركة والسكون يتعقبان في محل واحد .

دا مې ددې لپاره دا اقوال پيش كړل چې دوي خلكو ته وايي چې داد سلفو او د محدثينو رايه ده محدثين نزول په معنى د حركت نه اخلي او دوي نزول په معنى د حركت سره اخلي لنزول صفة الرب تبارك وتعالى داد اسلافو رايه نه ده والله اعلم بمراده قراءته تفسيره وتفسيره قراءته داد سلفو رايه ده دا نه چې نزول په معنى د حركت سره واخلي .

## بنځمه انفرادي عقيده د ابن تيميه :

هغه دا چې جنت مع اهلها به باقي وي او جهنم مع اهلها به باقي نه وي يو وخت پورې به وي جهنم به هم ختم شي او جهنميان به هم ختم شي .

ابن تيميه ابن قيم دا دواړه په دې كې په ټول امت كې متفرد دي او امت پرې سخت ردونه كړې په دې مسئله كې دا ددوي خطرناكه عقيده وه .

شفاء العليل في مسائل القضاء والقدر والحكمة والتعليل جلد صفحه په دې كې ذكر كوي :

فصل : والذين قطعوا بأبدية النار وأنها لا تفني لهم طرق .

كوم علماء چې قول كوي په ابديت د نار سره چې اور ابدي سرمدي دي او دا به نه فاني كيږي .

احدها الآيات . يو د ايات نه استدلال كوي .

والاحاديث الدالة على خلودهم فيها .

دويم د حديث دليل نيسي چې خالدين به وي .

وأنهم لا يموتون . دوي به مري نه .

وما هم منها بمخرجين .

آيت نه استدلال کوي يا دې آيت نه چې :

وأن الموت يذبح بين الجنة والنار . دې نه استدلال کوي : وأن الكفار لا يدخلون الجنة حتى يلج الجمل في سم الخياط ، دې نه استدلال کوي .

دې وايي :

وأمثال هذه النصوص وهذه الطريق لا تدل على ما ذكروه .

دا قسم دلائل چې دي دا وايي ددې خلکو چې جهنم به هميشه وي او اهل به يې په کې هميشه وي غير موحدين دا ددوي په دعوی دليل نه دي :

وانما يدل على انها ما دامت باقية فهم فيها . وايي د آيت معنی داده چې ترڅو پورې جهنم وي نو دوي به په کې وي .

فأين فيها ما يدل على عدم فنائها . کوم ځای کې دي آيت کې راغلل چې جهنم به نه ختميږي .

دا ځو مره غلط تاويل دي .

ما هم عنها بمخرجين . دوي به ترې نه وځي .

ابدا . راځي .

خالدين فيها ابدا . ابد الابد پورې دا ابد سره څه کوي .

نو دې وايي نه ترڅو چې ذا جهنميان دا جهنم وي نو دوي به په کې وي خو يو وخت به جهنم ختم شي نو جهنميان له کومه شو نو په دې خو دليل پيش کړه چې چا ويلې چې جهنم ختميږي نو رد کوي په مونږ .

فأين فيها ما يدل على عدم فنائها .

## الطريق الثاني .

دويم دلائل د مثبتينو چې جهنم به باقي وي مونږ يادوي .

دعوى الاجماع على ذلك وقد ذكرنا من اقوال الصحابة والتابعين ما يدل على ان الامر بخلاف ما قالوا حتى لقد ادعى اجماع الصحابة من هذا الجانب استنادا الى تلك النقول التي لا يعلم عنهم خلافها .

او كه دا اجماع او صحابه څوک يادوي نو استناد کوي په هغه نقولو باندې چې ده ته پرې علم خلاف کې نشته .

**الطريق الثالث** : أنه كالمعلوم بالضرورة من دين الاسلام ان الجنة والنار لا تفنيان بل هما باقيتان .

دا وايي بداهت نه ثابت دي چې زمونږ دين کې په تواتر راغلې خبرې دي .

ولهذا أنكر أهل السنة كلهم على أبي الهذيل وجهم وبشيعتهما . چې جهميه دي .

ممن قال بفنائها وعدوا اقوالهم من أقوال أهل البدع المخالفة لما جاء به الرسول ، ولا ريب أنّ هذا من أقوال أهل البدع .

شک نشته چې دا له اقوالو د اهل بدعو نه دي .

التي خرجوا بها عن السنة ولكن من اين تصح دعوى العلم النظري ان النار باقية ببقاء الله دائمة بدوامه .

دليل کوم دي په دې باندې چې جهنم به باقي وي .

فضلا عن العلم الضروري . چې کله ضروري علم ثابتوي .

فأين في الأدلة الشرعية أو العقلية دليل واحد يقتضي ذلك .

کوم دي دليل شرعي په دې باندې چې ددې دليل شي چې جهنم به باقي وي نشته .

ګوري دا عبارت اول نه آخره پورې دې قائل دي چې جهنم ختميږي مع اهلها ختميږي .

دلیل په دې باندې ابدي تکي دي که دې وايي چې ابدي تکي چې ابد الابد پورې به دا وي نو دلیل په دې باندې سورة احزاب ﴿خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا لَا يَجِدُونَ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا﴾ .

دارنګې د سورة بقرې دا آیت : ﴿وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ﴾ .

دارنګې د سورة نساء دا آیت : ﴿لَمْ يَكُنِ اللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقًا إِلَّا طَرِيقَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا﴾ .

دا ابدا تکي چې راځي دا دلائل دي .

یا ﴿كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيرًا﴾ چې سړېږي نو مونږیې نور هم تیزوو کموالې په کې نشه.

یا : ﴿وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُم مِّنْ عَذَابِهَا﴾ .

یا ﴿كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ أُعِيدُوا فِيهَا﴾ .

احادیثو نه دلیل په دې باندې هغه روایت د مسلم دي نبي عليه السلام فرمايي :

من يدخل الجنة ينعم فيها لا ييأس لا تبلي ثيابه ولا يفني شبابه .

په دې حدیث باندې علامه مناوي په فیض القدیر کې شرحه کوي جلد ٦ صفحه ۲۴۱ رقم د حدیث دي ۹۱۰۱ د جنت متعلق یې دغه حدیث ذکر کړې بیا وايي :

وهذا صريح في أن الجنة أبدية .

چې جنت ابدي دي .

لا تفنى .

نه فاني کيږي .

والنار مثلها .

او ریې هم مثل دي یعنې نه فناء کيږي .

وزعم جهم بن صفوان انهما فانيتان .

جهمیه وايي دواړه به ختمیږي .

لانهما حادثتان ولم يتابعه احد من الإسلاميين .

مسلمانانو کې چا هم ددوي اتباع نه ده کړې .

بل كفروه به .
بلكې كافرېې ورته ويلي .
وذهب بعضهم إلى أفناء النار دون الجنة .
ذهاب كړې بعضو دې ته چې اور ختميږي او جنت نه ختميږي .
داد ابن تيميه او ابن قيم رايه ده .
واطال ابن القيم كشيخه ابن تيمية في الانتصار له في عدة كراريس .
اوږد كړې بحث ابن قيم په شان د شيخ دده ابن تيميه په كومك كولو ددغه قول سره چې جهنم ختميږي جنت نه ختميږي .
وقد صار بذلك أقرب إلى الكفر منه إلى الإيمان . ابن قيم او ابن تيمية يادوي وايي په دې خبره أقرب إلى الكفر منه إلى الإيمان گرځيدلي .
لمخالفته نص القرآن . داد نص د قرآن مخالف دي دا خطرناكه خبره وه امت كې چا هم پرې قول نه دي كړې .

## شپږمه خطرناكه عقيده د ابن تيميه :

هغه داده چې ده به ويل اولني خبره چې ده راويسته چې سفر زيارت د نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته حرام دي دا معصيت دي چې څوک مدينې منورې ته د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د سلام په نيت ځي دا عاصي او گنهگار دي حتى چې دا عقيده يې هم وه چې سفر كې قصر جائز دي سفر كې څنګه قصر جائز دي وايي چې څوک مدينې منورې ته د زيارت لپاره ځي ده ته قصر جائز نه دي دا خو وايي گناه پسې روان دي نو څنګه قصر كوي .
مجموع الفتاوى جلد ۱ صفحه ۱۶۶ :
وأما الزيارة البدعية فهي التي يقصد بها أن يطلب من الميت الحوائج او يطلب منه الدعاء والشفاعة او يقصد الدعاء عند قبره لظن القاصد ان ذلك اجوب للدعاء .
چې د هغه د قبر سره دعاء غواړي يا هغه نه شفاعت غواړي گمان يې دادی چې هلته روضې سره دعاء بنه قبليږي .

فالزيارة على هذه الوجوه كلها مبتدعة لم يشرعها النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولا فعلها الصحابة لا عند قبر النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولا عند غيره وهي من جنس الشرك وأسباب الشرك.

الفتاوى الكبرى جلد ۵ صفحه ۲۸۸ کې وايي : استفتاء شوي ده چې يو سړي زيارت ته روان وي قصر ورته څنګه دي ؟

الجواب : الحمد لله رب العالمين اما من سافر لمجرد زيارة قبور الأنبياء والصالحين

فهل يجوز له قصر الصلاة؟

على قولين معروفين . يو قول دا چې هغه قول د متقدمي العلماء دي .

الذين لا يجوزون القصر في سفر المعصية . دا سفر د معصيت دي په سفر د معصيت کې متقدمين قصر جائز نه ګڼي .

كابي عبدالله بن بطة وابي الوفاء بن عقيل وطوائف كبيرة من العلماء المتقدمين انه لا يجوز القصر في مثل هذا السفر .

هذا السفر راجع دي قبورو د انبياو او صالحينو ته .

لانه سفر منهي عنه وهو مذهب مالك والشافعي واحمد .

سخت چلي دي سفر د عصيان چې دي هلته قصر جائز نه دي وهو مذهب مالك والشافعي واحمد .

امام صاحب وايي په سفر د عصيان کې هم قصر کولې شي او ثلاثة ائمه وايي چې په سفر د عصيان کې قصر نه شي کولی دا يو اختلاف دي خو هلته يې يو ځل پرې چسپان کړي چې زيارتونو ته تلل معصيت دي او سفر د معصيت کې خو قصر جائز نه دي نو دلته هم جائز نه دي .

هغه عوام داسې فکر کوي هو مذهب دا ده چې کومه خبره وکړه چې زيارت ته څوک روان وي قصر جائز نه دي دا مذهب مالک دي نو امام مالک رَحِمَهُ اللهُ خو مدينه منوره کې پروت وه هغه په ټوله زندګۍ کې يو حج کړې وه مکې معظمې ته هم نه تلو او چې چا به ورته

وويل چې ولې نه ځي وايي هسې نه مدينې منورې نه بهر راته مرګ رانه شي هغه دومره مدينې منورې د عاشقانو نه وه او ده ترې دا جوړه کړه چې هو مذهب مالك نه هغه په سفر معصيت کې قصر جائز نه دي وهو مذهب مالك .

اوس دا خبره چې دا سفر معصيت دي که طاعت دي نو دا خو ستا خپله خبره ده چې ته يې جوړوي :

ان السفر المنهي عنه في الشريعة لا يقصر فيه.

والقول الثاني انه يقصر وهذا يقوله من يجوز القصر في السفر المحرم كابي حنيفة .

ويقوله بعض المتأخرين من أصحاب الشافعي ممن يجوز السفر لزيارة قبور الانبياء والصالحين كابي حامد الغزالي وأبي محمد المقدسي وابي الحسن بن عبدوس الحراني .

نو عبارت خو تاسو وکتلو نچوړ د عبارت يې دادی چې د دې روضې د نبي عليه السلام ته سفر معصيت ګڼي اختلاف د هغه حديث نه جوړ دي چې :

لا تشد الرحال الا لثلاثة مساجد .

بستري مه تړي د سفر نيت مه کوي مګر دري مساجدو ته :

مسجد حرم ، مسجد اقصی ، مسجد هذا .

بس وايي دې نه اخوا سفر نا روا شو نو دا استدلال دده خو ډير ناقص دي .

له دې نه اخوا سفر د تجارت دي ته هم ورته جائز وايي دې نه اخوا سفر د جهاد دي ته هم ورته جائز وايي ته که مطلق سفرونه په دې حديث نفي کوي چې مطلق سفر نا روا بس دري مساجدو ته روا نو بيا خو دا ټول نا روا شول او په دې هيڅوا هم قول نه دې کړي .

د حديث مقصد دادی چې د زيادت اجر په نيت باندې بل مسجد ته مه ځي مګر دري مساجدو ته د زيادت اجر په نيت باندې ځکه ټول مساجد په حکم کې يو شان دي ته چې دې ځای نه ځي او بل مسجد ته روان يې چې ما ته او نچاس کروړ ملاويږي دا غلطه عقيده ده دا زيادت د ثواب په دري مساجدو کې دي .

Scanned by CamScanner

ددغه زیادت د اجر په نیت چې ځي نو یا حرم ته لاړ شه یا مدینې منورې یا مسجد اقصی ، دې نه اخوا بل مسجد ته د زیادت ثواب نیت مه څه نو دا خورد په تبلیغي جماعت دي چې د او نچاس کرور عقیده ساتي .

په سفرونو خورد نه دي چې مطلقِ سفر مه کوه دغه موضوع وه چې امام سبکي رَحِمَهُ اللهُ اولین مخالفت یې وکړو سر سخته مخالف دده شو .

شفاء السقام في زيارة خير الانام ، دغه کتاب امام سبوکي دده په دغه عقیده رد ولیکلو په هغې کې ۱۷ احادیث را اخیستې په دې مضمون باندې .

من أتى المدينة زائرا لي . څوک چې مدینې منورې ته راشي په حال کون دده کې چې قصد دده زیارت زما وي .

کنت له شفیعاً یوم القیامة .

دا اوس د عربو چې کوم ائمه دي سدیس نه خپله ما دا اوریدلي چې سفر زیارت د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته حرام دي داد ابن تیمیه تاثیر دي چې دده مقلدین دي خپل علم اورنا خو نشته ورسره او اسلاف تپول ورته بې دینه ښکاري او ابن تیمیه ورته مجتهد ښکاري .

تاسو ته ما د توسل په باب کې ما د مختلفو فقهاو حنفي مالکي شافعي حنبلي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ روضې ته ځي هلته به توسلات کوي استشفاع به کوي دغه نیت به دې وي دا مې ذکر کړې وه د توسل په باب کې .

هغه هم فقهاء دي له دده نه ښه فقهاء دي هغوي معتمد دي دده په شان غلطې رایې هغوي نه لري امت ته مقبول فقهاء دي او دې خو دومره مجروح دي چې چا په زندیقت مجروح کړې او چا په کفر اگر که زه به په کفر او زندیقت دده قول نه کوم خو ډیرو علماو پرې کړې دي او زما رایه د تکفیر او د زندیقت دده نه ده .

اصل کې دا تعمق في المسائل سړي خرابوي دې د متعمقینو علماو نه وه هغه ژور چې مسئله کې کوزیږي او دې به هم په هره مسئله کې ژور کوزیدلو او نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تعمق في السوال او تعمق في العلم نه منع کړې ده .

په روایت د مسلم کې چې تاسو به په مسئلو کې ژور نه کوزیږي که کوز شوي پسې بل ځای ته به په کې لاړ شي بې ځایه چون چرا په یو شي کې ننوتل عوام په شک کې اچول دا خو فائده نه کوي.

نو ابن تیمیه د متعمقینو نه وه په هره جزیه کې به ننوتلو بیا هلته داسې مقلد هم نه وه بس هلته به یې خپله څه رایه ښکاره کړه نو خطرناکه خبره دا چې سفر الی زیارة المصطفی یې حرام ګڼلو او هر کتاب دده چې وګوري دا تصریحات یې پرې کړې دي.

## بله خطرناکه خبره:

هغه دا چې د حضرت معاویه رضي الله عنه د حضرت عائشې رضي الله عنها او د حضرت علي کرم الله وجهه ددوي درمیان کې چې کوم اختلافات بخلافة علي راغلل دلته د اهلسنت رایه داده

چې حق مع علي دي خو مقابل جانب ته به بد نسبت نه کوي.

دې ځای کې دوه خطرناک جماعتونه اوس هم چلیږي او له پخوا نه هم راپاتې دي.

چې یوه د ناصبه وو فرقه ده او دویمه د افضلیه وو فرقه ده یو خو روافض دي روافض خو هغه جانب کافر ګڼي عیاذاً بالله او یا بد بد نسبتونه ورته کوي عیاذاً بالله.

او هر چې خوارج دي په مقابل د هغوي کې نو دوي خو حضرت معاویه رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه او حسنین دا ټولو ته نسبت د کفر کوي عیاذاً بالله.

دا خو هغه دي چې له بحث نه ساقط دي له دې دوه ډلو نه غیر دوه نورې عقیدې دي چې یوې ته ناصبه وایي دا چمچه د خوارجو ده هغوي ته خدمت کوي کار کوي خوارج نه دي خو له هغوي نه یوه ډله ده.

او بله افضلیه ده او افضلیه شیعه ګانو ته کار کوي افضیله هم ځان ته اهلسنت وایي او ناصبه هم ځان ته اهلسنت وایي د ناصبه وو عقیده څه ده هغه په دغه مسئله کې چې کومه نزاع راغلې ده زیات زور د حضرت معاویه او د حضرت عثمان رضي الله عنه حقانیت ته ورکوي.

او وایي چې حضرت علي رضي الله عنه ولې انتقام وانخسته د حضرت عثمان رضي الله عنه د قاتل.

او بیا دغه وخت کې دده خلافت اجماعي نه وه اتفاقي نه وه اختلاف وه په کې ولې د خلافت اعلان کړو دده نه نزاع جوړه ده یعنې دا څو مره شهیدان چې شوي دا ملامتیا په حضرت علي رضي الله عنه اچوي نو رجحان خویې طرف د خوارجو ته ورکړو یو څه خو حضرت

علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کافر نه وايي صرف دا وايي چې دا خلافت چې وه دا اتفاقي نه وه دده خلافت نه کارِ خير نه وه ولاړ شوې ده ته په کار دا وه چې خلافت يې پرېښې واي يا دې محب د خلافت او رياست وه دا هسې د دنيا په مينه مست وه داسې نسبتونه ورته کوي .

ددې ناصبه وو بالمقابل افضليه ده د هغوي عقيده څه شي ده هغوي ييا په دغه مسئله کې خو اهلسنت هم حق د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ګڼي دوي هم حق د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ګڼي خو اهلسنت د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شان کې څه نه وايي همدغه شان د حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عائشه صديقه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په شان کې هغلته ساکت پاتې کيږي هغوي سره او که نسبت د خطاء کوي اجتهادي کوي.

او دوي هغه طرف ته طعنې وايي دا عقيده د افضلية فرقې ده نو دلته اهلسنت د څلورو عقيدو مينځ کې په دې جزيه کې راغله خوارج روافض ناصبه افضليه اهلسنت ددې څلوورو مينځ کې رفتار کوي نو لار به پيدا کړي .

خوارج تکفير د جانبينو کوي دې نه به انتهائي ځان ساتي روافض تکفير د احد الجانب کوي د معاوية رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تکفير کوي دې نه به هم سخت ځان ساتي .

ناصبه نسبت د خطائي کوي حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او افضلية نسبت د خطائي کوي طرف د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خو طعن پرې جائز ګڼي .

يو خطاء اجتهادي ده او يوه طعنه ويل دي دا فرق لري نو دا افضليه پرې طعن وايي.

نو دا مسئله ډيره پيچيده ده ډير زيات په احتياط يا غلې پاتې شي له دې مسائلو نه دغه تاريخ که ګوري د جنګ سفين يا جنګ جمل نو دا هم پسې مه ګوري .

دا څو مره لوي لوي مؤرخين دي زه د تاريخ ډير شوقي يمه ما ته چا ويل چې ابن خلدون دا واقعه بنه بيان کړې ده فقط ددې واقعې د پاره ما تاريخ ابن خلدون واخيسته او دا ټوله واقعه يې په څلورو کرخو کې بيان کړې ده دا تاريخونو والايې ولې نه را اخلي خير په کې نشته .

ددې مسئلې ذکر ددې علل لټول دايې ولې وکړه ولې دا اختلاف راغې او جنګ ولې وشو .

د دواړه جانبه نه ۷۵۰۰۰ صحابه او تابعین شهیدان شوي دي ۴۵۰۰۰ کسان په څلورو ورځو کې د حضرت معاويه رضي الله عنه په لښکر کې شهيدان شوي دي او ۲۵۰۰۰ کسان د حضرت علي کرم الله وجهه په لښکر کې شهيدان شوي دي عمده عمده صحابه کرام په کې شهيدان شوي دواړو جانبو کې صحابه ولاړ دي.

مفتي شهزاده صاحب د شيخ ادريس صاحب نيکه وه مونږ ته شيخ ادريس صاحب حکايت کولو وايي چا ترې نه تپوس وکړو چې حضرت معاويه رضي الله عنه او حضرت علي کرم الله وجهه مينځ کې دې څه رايه ده حق به د چا سره وي وايي دې غلې شو.

وايي ده ورته وويل چې ستا دا مقصد دې زه قاضي يمه او دوه مجرمان راغلل راته چې يو حضرت علي رضي الله عنه دې او بل حضرت معاويه رضي الله عنه دې فيصله يې وکړه يار هغه سائل وايي ځان پورې خفه شو زه دومره غټ سړې يمه چې زه به نن قاضي يمه او زما مجرمان به هغوي وي او فيصلې به زه کومه.

نو ځان نه قاضيان بين الصحابه مه جوړوي بس اسلافو دومره ويلې چې حق مع علي رضي الله عنه خو مقابل جانب هغوي هم په ښه مقصد باندې لګيا وه هغوي د رياست د پاره نه وه هغوي دواړه طالبين د حق وه دا چې يو جانب چونکې ولايت لرلو والي وه دويم جانب ته نه وه په کار دغه وخت سره چې بغي شوې وايي پاڅيدلې واي خو وشوه ترې نه د يو مقصد د پاره وشوه چې ولې د حضرت عثمان رضي الله عنه قاتل نه نيول کيږي او دا يقيني يوه غټه خبره ده.

ته د يو ځای والي يې ستا په ملک کې د نبي عليه السلام د يار حضرت عثمان رضي الله عنه په شهادت رسيږي او ته قاتل نه نيسي حضرت معاويه رضي الله عنه خو په شام کې وه هغه ته خو پته نه وه چې دا وضعه د مديني منورې څنګه ده هغه بار بار خطونه راليږل چې زه په خط تا سره بيعت کومه د معاويه رضي الله عنه الفاظ دا وه چې د حضرت عثمان رضي الله عنه قاتل ونيسه او اعدام يې کړه قاتل معلوم نه وه کار د شپې شوې وه.

او عامه بلوی دا وه چې هر چا به چغې وهلې چې ما وژلې دي نو هغه خو خاص کسانو شهيد کړې وه حضرت علي رضي الله عنه تحقيق کوه چې سړي معلوم شي چې دا کار چا کړې چې اصلي سړي قصاص شي دغې مينځ کې شيطانانو کار وکړو حضرت معاويه رضي الله عنه يې غصه کړو.

بهر حال دا واقعه کې تفصيل هم نه وي په کار ډير زيات احتياط او غلي پاتي کيدل په کار دي، خو مسئلې د اهلسنت لکه دلته د څلورو ډلو سره نزاعي شوي دا خوارج او روافض يې ښکاره دي خو دا ناصبه او افضلية چې ځانونو ته اهلسنت وايي دا هلسنت نه دي.

ابن تيميه په دې مسئله کې د ناصبه وو نه دي مطلب مې دا دی چې ابن تيميه د خوارجو نه، نه دي تکفير نه کوي خو د ناصبه وو نه دي حضرت علي کرم الله وجهه ته ډير بد نسبتونه کوي په دې کارونو کې، دا وايي محب د ولايت او رياست وه دا وايي د ولايت د پاره جنګيدلو او نور نور نسبتونه ورته کوي هغه طرف ته ډير ميلان ورکوي د ده رواياتو ته ګوري نو پته درته لګيږي.

منهاج السنة جلد ٦ صفحه ٦٦:

و اما قتال الجمل وصفين فلم يرو احد منهم فيه نصاً.

وايي جنګ جمل او صفين کې جانبينو سره هيڅ دليل نه وه يعنې جنګ يې کړې دي خو دليل يو هم نه لرلو.

الا القاعدون.

مګر کوم چې ناست وه.

فانهم رووا الاحاديث في ترك القتال في الفتنة واما الحديث الذي يروي انه امر بقتل الناكثين والقاسطين والمارقين فهو حديث موضوع على النبي ﷺ ومعلوم أن الرأي ان لم يكن مذموما فلا لوم على من قال به وإن كان مذموما فلا رأى اعظم ذماً من رأي أريق به دم الوف.

ومعلوم أن الرأي إن لم يكن مذموما فلا لوم على من قال به.

خوارج يادوي وايي چې دوي کوم اعتراضات کول نو دا رايه يې مذمومه ده خو څه ملامتيا په دې قول کې پرې نشته.

وان كان مذموماً فلا رأى أعظم ذما من رأي أريق به دم الوف.

که هغه مذمومه وه خو ملامتیا په کې نشته او که هغه رایه مذمومه شي نو ددغې راي نه اعظم ذما رایه نشته دي چې په هغې کې د الوفو وینه تل شوه.

داد حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رایه یاد وي شیعه ګانو باندې رد کوي وایي که د حضرت معاویه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رایې ته مذمومه وایي نو رایه د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اعظم ذما دي داد هغې نه ډیره مذمومه وه اوس د شیعه ګانو رد خو دې وکړو چې ذم رایې د حضرت معاویه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کوي خو دې بل طرف کې دې د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رایې ته اعظم ذماً ویلې دا دې څه وکړو. داد ناصبه وو جانب ته رجحان ورکوي لکه شیعه ګان چې ذم رایې د حضرت معاویه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کوي طرف د افضلیت ته رجحان ورکوي:

منهاج السنة جلد ٦ صفحه ۱۱۷ دلته وایي:

والمقصود هنا أن ما يعتذر به عن علي فيما أنكر عليه.

مقصود دادی که حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باندې چا رد کړې دي په دې مسئله د جنګ کې د هغه نه چې کوم دلیل او عذر پیش کیږي نو.

يعتذر بأقوى منه عن عثمان.

نو بیا د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه بیا قوي عذر هغه وګرځول شي.

فان علياً قاتل على الولاية.

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ جنګونه په ریاست کړې دي.

وقتل بسبب ذلك خلق كثير عظيم.

او ډیر مخلوق په کې قتل شوې.

ولم يحصل في ولايته.

او نه دي حاصل په ولایت د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کې.

لا قتال للكفار ولا فتح لبلادهم.

نه قتال د کفارو او نه فتحه د ښارونو ددوي.

ولا كان المسلمون في زيادة خير.

ګوري دا عباراتو ددې ته تاسو داد حضرت علي رضي الله عنه سره ښکاره عداوت او دشمني خو تکفيريې نه کوي نو خارجي نه دي خو د ناصبه وو نه دي هغه طرف ته رجحان ورکوي.

دا رنګې منهاج السنة جلد ۷ صفحه ۱۱۱، شيعه ګانو باندې رد کوه خو ځان خارجي مه جوړوه کنه.

وهذه الفضيلة لم تثبت لغيره من الصحابة ممنوع.

شيعه ګان که وايي چې اول من اسلم دا حضرت علي رضي الله عنه دي شيعه ګان دا وايي او دې ته زور ورکوي د صديق اکبر رضي الله عنه مقابله پرې کوي دې جواب کوي دا افضليت چې اول من اسلم حضرت علي رضي الله عنه دي.

لم تثبت لغيره من الصحابة ممنوع. که وايي چې حضرت علي رضي الله عنه غير بل صحابي ته د اول من اسلم نسبت نه کيږي نو منع ده.

فان الناس متنازعون في اول من اسلم.

خلک په جګړه کې دي په اول من اسلم کې.

چا ويلي فقيل ابوبكر اول من اسلم دي فهو اسبق اسلاماً من علي ان علياً اسلم قبله:

دې اوس جواب کوي:

لكن علي كان صغيراً.

حضرت علي رضي الله عنه چې اسلام راوړو صغير وه.

واسلام الصبي فيه نزاع بين العلماء.

او د ماشوم په اسلام کې د علماو مينځ کې نزاع ده.

دې ګوري د حضرت علي رضي الله عنه د ايمان هم قائل نه دي عبارت يې چې وګوري نو ښکاره دې د ناصبه وو نه خو يقيني دي بالکل خوارجو ته ميلان لري دومره د اهل بيتو او د حضرت علي رضي الله عنه سره دشمني لري.

دا وي داسې کله سړي د يو جماعت په دشمني کې راشي خو هلته بل جانب سړي نه خرابيږي اوس مونږ هم د شيعه ګانو مخالف يو سپاه صحابه يې هم مخالف دي خو سپاه

صحابه ښکاره نه وايي چې د اهل بيتو دشمني وکړي خو لکن خاصتاً په زندګي کې به د اهل بيتو تعريف هم ترې وانه وري د شيعه ګانو په دشمني کې دومره ننوتي دي چې زما پرې خطره د ناصبيت راشي چې ناصبه نه شي او هغه جانب د اهل بيتو طرف ترې خفه نه شي .

مونږ خو وسط کې يو د اهل بيتو تعريف هم منو د هغه بل جانب تعريف هم منو او د اهلسنت دغه لاره ده چې وسط کې لاړ شي .

دارنګې منهاج السنة النبوية جلد ۸ صفحه ۲۰۴ کې وايي :

وعلي يثبت له حكم الكفر والايمان هو دون البلوغ . له بلوغ نه مخکې ده ته د کفر او د ايمان حکم ثابتيږي .

والصبي المولود بين ابوين كافرين يجري عليه حكم الكفر في الدنيا باتفاق المسلمين .

وايي چې پلار او مور د چا کافر وي وايي دې مولود باندې په اتفاق د مسلمينو د کفر فيصله کيږي .

واذا اسلم قبل البلوغ . د بلوغ نه مخکې چې اسلام راوړو .

فهل يجري عليه حكم الاسلام قبل البلوغ ؟ مسلم ورته ويل کيږي قبل البلوغ .

على قولين للعلماء . علماء اختلاف لري .

بخلاف البالغ فانه يصير مسلماً باتفاق المسلمين فكان اسلام الثلاثة مخرجاً لهم من الكفر باتفاق المسلمين .

دا دري خلفاء حضرت عثمان رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت صديق اكبر رضي الله عنه .

فكان اسلام الثلاثة مخرجاً لهم من الكفر باتفاق المسلمين واما اسلام علي فهل يكون مخرجاً له من الكفر ؟ على قولين مشهورين .

او د حضرت علي رضي الله عنه اسلام مخرج کفر دده نه دي او که نه دي قبل البلوغ دې کې د علماو اختلاف دي مشهور قولونه يو دادى چې کفر نه وځي او بل قول دادی چې نه وځي يعنې ايمان د صبي نه دي قبول .

نو دده عبارت ته ګوري اوس د شيعه ګانو د مقابلې به دا مقصد وي چې د حضرت علي رضي الله عنه تنقيص به په کې کوو دا به اهلسنت شي نه دا د ناصبه وو نه دي او نواصب د خوارجو چمچې دي هغوي تکفير نه کوي خو دومره ده چې د اهل بيتو غټ تنقيد کوي.

من جمله د مقالاتو شنيعه وو نه هغه تحريم د توسل بالانبياء والصالحين چې په ذواتو باندې وسيله حرامه ده اولين قائل پرې ابن تيميه دي سلفو کې دا قول چا نه وه کړې او ددې وجې نه شفاء السقام کې صفحه ۱۶۰ کې امام السبکي رحمه الله فرمايي:

اعلم انه يجوز ويحسن التوسل والاستغاثة وتشفع بالنبي صلى الله عليه وسلم الى ربه سبحانه وتعالى وجواز ذلك وحسن من الأمور المعلومة لكل ذي دين المعروفة من فعل الانبياء والمرسلين وسيرة سلف الصالحين والعلماء وعوام المسلمين ولم ينكر احد ذلك من أهل الأديان ولا سمع به في زمن الازمان حتى جاء ابن تيمية فتكلم في ذلك بكلام يلبس فيه على الضعفاء الاغمار وابتدع مالم يسبق اليه في سائر الاعصار.

دا وايي چې دې نه مخکې دا قول چا نه وه کړې چې وسيله په ذواتو حرامه ده دا څومره خلک چې دنيا کې اوس لګيا دي که اشاعتيان دي که وهابيان دي وغيره د نبي عليه السلام د ذات بې آدبياني کيږي دا ګلان ابن تيميه کرلې دي دا دده تفرد دي له ده نه مخکې اسلافو کې چا په دې باندې رد نه دې کړې.

حاشية ابن حجر على شرح الايضاح صفحه ۴۸۹ کې ابن حجر هيتمي ليکي:

ولا يغتر بانكار ابن تيمية لسن زيارته.

څوک دې دوکه نه شي په انکار د ابن تيمية باندې چې زيارت د نبي عليه السلام د مسنوناتو نه او جائزو نه دي.

فانه عبد اضله الله تعالى.

ابن تيميه يو سړي وه چې خداى تعالى ګمراه کړې وه.

كما قاله العز بن جماعة واطال في الرد عليه تقي السبكي في تصنيف مستقل ووقوعه في حق رسول الله صلى الله عليه وسلم ليس بعجب فانه وقع في حق الله سبحانه وتعالى.

وايي دا چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په شان کې خبرې کړي دا څه عجيبه نه ده هغه د خداى جَلَّ جَلَالُهُ په ذات کې هم خبرې کړې دي حدوث د حرکاتو وغيره نو علماء مخکې نه په ده باندې ردود کړې دي .

زما نچوړ ددې خبرو دا نه دي چې تاسو راوليګېږي او تقارير د ابن تيميه په رد باندې شروع کړي يو عالم وه يو حافظ وه يقيناً د علم نه يې زه خپله متأثر يمه ډير بحر عميق وه په علم کې خو تفردات لري که تاسو يې کتب مطالعه کوي داسې څيزونه به راشي چې بيا به په هغې کې د اسلافو او د اهلسنت د عقيدې نه پرې واوړي نو خپل صرف دومره پرچار کوي چې کتب يې مه ګوري او مه يې بل چا ته ترويج ورکړي چې دده کتب مطالعه کړي دغه مې ددې موضوع نچوړ دي .

دا مې نچوړ نه دي چې تاسو په منابرو دده تکفير وکړي او ده ته زنديق ووايي نه يو عالم وه حنبلي مذهبي وه او د تبحر د تعمق د لاسه يې تفردات لرل هغه تفرداتو کې اسلافو په ده ردود کړې دي مونږ هغه رانقل کړل .

او دا رايې تاسو خپله هم وليدلې چې د قبلولو رايې نه دي دغه شان تفردات شته دي او دا چې نسبت د تفرداتو ورته شوې دي دا ډير فقهاو کړې دي چې رايې خپلې لري چې هغې کې امت ده سره متفق نه دي .

**سوال :** بعضې خلک ابن تيميه سره رحمة الله عليه وايي ؟

**جواب :** داسې سوال دي چې زه په کې ډير څه نه شم ويلې خداى دې پرې رحم وکړي نو کفر بواح باندې خو کافر نه دي کنه چې دعاء ورته ممنوعه شي دعاء د مغفرت او د رحمت خو صرف مشرک ته نه کيږي نو اوس مشرک خو نه دي او نه کافر په کفرِ بواح دي چې ده ته د مغفرت دعاء دې ممنوعه شي نو که رحمة الله عليه ورته وويل شي په دې معنى باندې چې د شان د برايي د پاره يې ونه وايي دې د پاره چې خدايه رحم پرې وکړي ددې خو خپله معنى هم جوړيږي .

## حکایت :

لکه ما ته يو اهل حديث حکايت کولو وايي رستمي باندې وهابيان راټول شول چې خفه شوي وه له وهابيانو او واپس حنفي کيدلو دې نه لې مخکې نو کور ته وايي ورته ډير وهابيان راغلل دې مشرانو يې ورته وويل چې دو مره عمر مونږ تا ته دا درکړه او کومکونه مو درسره وکړه هغه مجلس کې يو سړي ناست وه ما ته يې حکايت کولو .

وايي ورته وي ويل چې اوسه پورې تا نه مونږ د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ خلاف څه وآنه وريدل اور ستمي به په امام صاحب باندې رد نه کولو ګوري دې اهل حديث شو خو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ سره به ده رحمة الله عليه ويل تمام تقاريريې واوري نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ بې آدبي به يې نه کوله .

نو دا وايي دې ته ورته راغلل چې دومره خرچې مو درکړي او ته اوسه پورې په امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ رد نه کوي او نه د هغه خلاف څه وايي او بله دا چې د هغه نوم سره رحمة الله عليه وايي .

نو رستمي خو هم ډير چالاکه دې واي ده ترې نه ځان په دې خلاص کړو چې تاسو څه پوهيږي دا خو ما د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دومره سپکاوې په دې کې کړې دې چې لا تاسو نه دې کړي وايي ځنګه وايي زما مقصد دا دی چې ډيرې غټې خطاګانې ترې شوې خدايه وي بښې رحمت پرې وکړي دا مې مقصد دې وايي وهابيانو نه يې په دې ځان خلاص کړو.

نو زه تاسو ته وايمه چې رحمة الله عليه خو څو معنی ګانې لري چې يو سړي رحمت الله عليه ورته وويل کافر ورته مه وايي هغه داسې وايي چې دې سړي نه خطاء شوې خدايه رحم پرې وکړي په دې معنی باندې د شان د براييې په معنی باندې نه .

**سوال :** نبراس ليکلي که چا ابن تيمية ته شيخ الاسلام وويل نو کافر کيږي ؟

**الجواب :** ما نبراس کې دا ځای نه دې کتلې خو زه وايم دا به يې خپل قول نه وي د چا قول به يې نقل کړې وي صاحب د نبراس .

خو دا قول زه نه شم قبلولې ځکه چې ډيرو اسلافو ابن تيميه ته د شيخ الاسلام نسبت

کړې اول محمود آلوسي ته کافر ويلې شي ځای په ځای خپل تفسير کې قال شيخ الاسلام او مجدد نسبت ورته کوي .

ابن حجر صاحب ته څوک کافر ويلې شي هغه ورته دا نسبت کړې دي .

داسې ډير وعلماو محدثينو کتابونو کې زمونږ دا فقه کې هم شته دي چې ابن تيميه ته د شيخ الاسلام نسبت شوې دي .

يو ځل ما دا مطالعه کوله په کمپيوټر کې چې ابن تيمة ته شيخ الاسلام چا ويلې دي خپل حنفي فقهاو اقوال مې ډير وليدل چې شيخ الاسلام يې ورته ويلې دي .

نو دغه الفاظ که صاحب د نبراس ويلې يا د چا قول يې نقل کړې وي اعتبار به ورته نه وي او نه د قبلولو وړ دي که چا ده ته شيخ الاسلام ويلې نو کافر شو دا ما تاسو ته اول کې ويلې چې څه خلک يې رئيس الزنادقه ګڼي او څه خلک يې امام مجتهد او متبع ګڼي .

تاسو لږ وسط کې لاړ شي مه ورته زنديق او کافر وايي او مه ورته امام مجتهد وايي دغه د وسط لاره عبد الحي لکهنوي رَحِمَهُ اللهُ اختيار کړې ده او دا تفردات يې خطرناک دي خاصتاً دا دوه خبرې ډيرې خطرناکې دي چې توسل ته حرام ويل او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ زيارت تللو ته حرام ويل او دې سفر کې قصر ناجائز ګڼل دا يې دومره په حق د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کې ګستاخي کړې ده چې خطره لري .

